تکمله هم لري چي ملا فضل بیگ روشاني په شلم قرن کي پوري نښلولي ده.
عکسي نسخې یې په ماوراء النهر کي وې چي یوه نسخه یې عکسي هم چاپ سوې ده.

## ﴿ ۱۳۱ ﴾

## هنورام د (تاریخ بلوچستان) مؤلف

دا سړی د شلم قرن په ابتداء کي د انګریزي بلوچستان یو مامور و.
چي د بلوچستان یو تاریخ یې په اردو په کوټه کي وکیښ. چي ۱۹۰۷ م کال په لکنهو کي چاپ سو.

دا کتاب د افغانستان او بلوڅو روابط او تاریخي واقعې د بلوڅو د شجرو او انسابو سره ښه راښیي. کله جغرافي او رجالي برخي هم لري.

## ﴿ ۱۳۲ ﴾

## تاریخ قندهار در عصر درانی

په لوړ نامه یو فارسي کتاب د لندن په انډیا آفس نمبر ۳۷۶۹ سته چي د مؤلف نوم یې نه دی معلوم.

## ﴿ ۱۳۳ ﴾

## رای چنرس د (چهار گلشن) مؤلف

دا سړی په هند کي اوسېدی په ۱۱۷۳ ق کال یې خپل کتاب تالیف کي چي بیا نو د ده لمسي رای بهان منشي په ۱۳۰۴ ق تکمیل کړی دی. خطي نسخې یې د هند په علي ګړ او بانکي پور او برټش موزیم کي سته او خورا ګټه ور کتاب دی چي د هند د پښتنو شاهانو تاریخي معلومات لري او د افغاني درانو د وختو دولتي عایدات هم په شرقي ولایاتو، لکه لاهور او ملتان کي ښیي.



## ﴿ ۱۳۴ ﴾

## عصمت الدین د (خلاصة الاخبار) خاوند

دا سړی د محمداسماعیل زوی او د میر محمد لمسی و چي د امیر دوست محمد خان لنډ احوال یې تر ۱۲۵۴ ق پوري په فارسي کښلي و او دوې خطي نسخې یې د بنګال په ایشیاټک سوسایټي کي وي. چي په نهم قرن کي لیکل سوي وې.

## ﴿ ۱۳۵ ﴾

## سید محمد طباطبایي اصفهاني د (نسب نامه افاغنه) مؤلف

دا مؤلف په دیرلسم قرن کي د ایران اوسېدونکی و چي د انګریزانو د سفیر هنري ایلیس په خواهش یې په ۱۲۲۴ ق یو کتابګوټی د (نسب نامهٔ افاغنه و کیفیت حکومت آنها) په نامه وکیښ، چي د افغانانو لنډ تاریخ او د دوی حکومت پر پاریس باندي بیانوي او د افغانستان د ښارو او اقوامو او قبیلو شرح لري، چي یوه خطي نسخه یې د بنګال د ایشیایي ټولني په کتابخانه کي وه، د ۱۲۲۴ ق کال لیک.

## ﴿ ۱۳۶ ﴾

## ثاقب د (تاریخ افاغنه) لیکوال

مؤلف یې محمد شهاب الدین خان ثاقب دی، چي د ۱۹۰۰ م په شاوخوا کي د هند له پښتني کورنیو څخه یو لیکوال و او دا کتاب یې په دوه ټوکه کي په اردو ژبه د لاهور په حمیدیه پریس کي په ۱۳۲۳ ق کال چاپ کی. لومړی ټوک ـ ۱۲۴ مخه، دوهم ټوک ـ ۲۱۴ مخه.

دغه کتاب هم د افغانانو د اسرائلیت عنعنوي داستانونه لري خو ډیري داسي خبري هم پکښي سته، چي تاریخي اړخ یې ټینګ ښکاري او د

افغانانو د اولیاوو احوال یې د نعمت الله له مخزن افغاني څخه را اخیستي دي.

## ﴿ ۱۳۷ ﴾

## احمد د (معدن اخبار احمدي) لیکوال

احمد بن بهبل د جانگیر په وختو د ۱۰۲۸ ق په حدودو کي دغه کتاب په دوه ټوکه کي کښلی او د شرق عمومي تاریخ دی، چي د هند د افغاني شاهي کورنیو لودیانو او سوریانو احوال هم پکښي سته، د کابل په ارشیف کي یې هم یوه خطي نسخه سته، د برټش موزیم او انډیا آفس نسخې یې هم معلومي دي.

## ﴿ ۱۳۸ ﴾

## محمد بدر الرحمن د (واقعات دراني) مؤلف

دا کتاب د درانو د سلطنت تاریخ دی، له احمدشاهه د شاه شجاع تر قتله ۱۲۵۷ ق پوري چي د افغان او انگرېز لومړی جنگ لا جاري و. د هند په کانپور کي چاپ سوی دی او د طبع تاریخ نه لري